# د بحث خیلے مناظره

پہ مسئلہ دَ

# سماع الاموات عند القبور

پہ مینځ د


مولانا واحد اللہ وحدان صاحب

اود

مفتی محمد ندیم محمودی صاحب

ضبط وتحریر: طالب العلم منیب الرحمٰن باجوڑی



ناشر: جامعہ تعلیم القرآن چراٹ روڈ ڈاگ بیسود ضلع نوشہرہ 0308-0427476

☆☆☆

## فهرست

کتاب نوم : د بټ خیلے مناظره

ضبط وتحریر ، منیب الرحمن باجوړي

کمپوزنګ ، منیب الرحمن باجوړي

تعداد . ۱۰۰۰

تاریخ . ۱٤ اکتوبر، ۲۰۲۰ بطابق ۲٦صفر، ۱٤٤۲ھ

چهاپ ، ړومبے

د چهاپ ځائے نور الله کتوزئی پرنټرز جي ټي روډ پشاور
03149074877

بسم الله الرحمن الرحيم

# پیش لفظ

اَلْحَمْدُ لله عَلىٰ مَا اَنْعَمَ ، وَعَلَّمَ مِنَ الْبَيَانِ مَا لَمْ نَعْلَمْ، وَالصَّلوٰةُ عَلىٰ سَيِّدِنَا مُحَمَّدٍ خَيْرِ مَنْ نَطَقَ بِالصَّوَابِ وَ اَفْضَلِ مَنْ اُتِيَ الْحِكْمَةَ وَفَصْلَ الْخِطَابِ وَعَلىٰ اٰلِهِ الْاَطْهَارِ وَصَحَابَتِهِ الْاَخْيَارِ.
اَمَّابَعْدَ :-

☆-کله چه د بټ خیلے مناظره او شوله او ما واوریدله نو په هغے کښې فریق اول مناظر مفتی ندیم صاحب په خپل ترن اول کښې وائي:
" عوام به هغه په خپله باندے اوګوری فیصله به کوی بیا ، (انشاء الله) ".

☆ -او بیا په خپل ترن نمبر هفتم کښې په اوچت اواز سره وائي :
" آو پنج پیریانو رونړو ، څه تاسو ته ویم د الله بندګانو لګ په دے دلائلو سوچ اوکي ، د دے کیمرے په سترګی به تاسو اوګوری فیصله وکړ ".

☆-کله چه مناظره اوشوله نو هغه خو یو صوتی تقریر وؤ ، چونکه د دغه صوتی تقریر او د جانبینو د لائل محفوظ کول او بیا په هغے باندے فیصله کول مشکل او ګران وو، او نه د هرچا سره دومره وقت وی ، او خصوصا په داسے علمی مسئله کښې فیصله کول د عوامو کار نه دے ، بلکه د علماء کرامو کار دے ، نو دعلماء کرامو د سهولت د پاره ما اراده اوکړه چه څه دا اولیکمه ، او منظر عام ته راشی په کتابی شکل کښې ، او هر عالم ئي اوګوری نو هغه ته به د جانبینو په دلائل باندے سوچ او فکر کول اسان شی او بیا فیصله کول به ورته هم اسان شی .

★- ما د خپل بشری طاقت مطابق حتی الوسع کوشش کړیدے چه هر مناظر چه هر څنګه لفظ وئیلے دے ما هغه لیکلے دے ، بیا هم کچرے کم لفظ رد وبدل لیکلے شوے وی نو څه د هغے معذرت غواړم ، او په دے لیکلو کښې ما د یو جانب طرفداری هم نه ده کړے ، البته په مناظره باندے د پوهیدلو د پاره ما څهٔ بعض عنوانات دخپل طرف نه لیکلي دي ، مثلا:

★(۱) د فریق اول نه مراد مفتی محمد ندیم محمودی صاحب دے.

★(۲) د فریق دوم نه مراد مولانا واحد الله وحدان صاحب دے.

★او بعض نور عنوانات چه هغه ما تفصیلاً په فهرست کښې راوستی دی ، د اسانتیا د پاره ، نو دغه الفاظ هم ځما دی ، مثلا ، فریق اول : ټرن اول . الخ ... چه تفصیل د هغے د فهرست نه معلومیږی .

★په هر یو ټرن کښې دواړه فریقین ځپل خپل وخت کښې خبره کوی ، یعنی هر ټرن شل منټ وی ، لس منټ د یو فریق او لس منټ د بل فریق .

★ټوله مناظره یوولس ټرنه ده ، او دولسم ټرن نیمګړے پاتی شویدے .

★دا مناظره ما د الضحی ټی وی والا د رکاډنګ نه لیکلی ده خو بیا الضحی ټی وی والا پوره مناظره نده نشر کړے په فیس بك باندے ، او څه کټ کوټ پکښې شوے وو، دغه کټ شوی ځائیونه ما د یوټیوب نه راواخستل .



طالب العلم

منيب الرحمن باجوړی عفي عنه

(۱٤/اکتوبر /۲۰۲۰ء ـ بمطابق ـ ۲٦ـ صفر ـ۱٤٤۲)ھ

# د فریق اول د صدر بیان

اعوذ باللہ من الشیطن الرجیم بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

اِذَا جَآءَ نَصْرُ اللّٰهِ وَ الْفَتْحُ ۝ وَ رَاَيْتَ النَّاسَ يَدْخُلُوْنَ فِيْ دِيْنِ اللّٰهِ اَفْوَاجًا ۝ فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَ اسْتَغْفِرْهُ اِنَّهٗ كَانَ تَوَّابًا ۝

(صدق الله العظيم)

سُبْحٰنَكَ لَا عِلْمَ لَنَآ اِلَّا مَا عَلَّمْتَنَا اِنَّكَ اَنْتَ الْعَلِيْمُ الْحَكِيْمُ .

رب زدني علما وارزقني فهما ، اللّٰهُمَّ صل على محمد و على اٰل محمد كما صليت على ابراهيم وعلى اٰل ابراهيم انك حميد مجيد ، اللّٰهُمَّ بارك على محمد وعلى آل محمد كما باركت على ابراهيم وعلى آل ابراهيم انك حميد مجيد .

یا رب صل و سلم دائما ابدا علی حبیبك خیرِ الخلقِ كُلِّهِمِ.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

نن ستائس تاریخ بروز پیر د بټ خیلے پدے مضافاتو کښں د سَماع الموتی عند القبور په موضوع باندے چه د کمنے مسئلے د جانبینو نه شرائط لیکلی شویدی ، یاتعین د مناظرے د موضوع شویدے ، نو (الحمد الله) په تائم باندے دغه ملګری هم رارسیدلی دی او مونګه ستاسو ځائی ته رارسیدلی یو،نو(انشاء الله العزیز)څه صرف د خپل استاذ محترم د مناظر او د دے ملګرو تعین کومه نور خو تولو ته پته ده تاسو ته پته ده تول پي پیژنی او بیا به د هغے نه پس (انشاء الله) مناظرین خپل مینځ کښں مخامخ کیکی او سنجیدګي سره ادب او احترام سره بغیر د شور شرابی نه به (انشاء الله) بحث مباحثه کیکي ، یقینا ابتداء کښں چه مونږ راغلو نو انتهائی څه

خوشحاله شومه د دغه ملګرو د طرف نه ډیر ښه استقبال او ډیر ښه ملاویدل هغه او شو او الله دے اوکړي چه دا مجلس تر اخیره پورے هم هغه شانتې سر ته په ادب او احترام او سجندګئي سره چه کم دے هغه اُورسی.

او ستاسو نه څما دا مُطالبه ده څنګه چه حضرت مفتی صیب دے ملګرو ته اویل مونږ ستاسو په وینا باندے هم ستاسو ځائے ته راغلی یو، نو مونږ ستاسو یو اعتبار سره میلمانه یو، نو تاسو به څمونږ خیال ساتئ مونږ به ستاسو خیال ساتو، او یوه خبره چه هغه ډیره قابل غور ده نو هغه داده چه دغه معاهده هم شویده او انشاء الله چه د دغه معاهدے پاسداري به هم کوو چه د دے ځائے نه بعد یعنی مناظره چه کله ختمه شی چه څومره وخت(درے/۳) ګهنټے څومره لیکلے شویدے، نو د هغې مطابق چه کله مناظره ختمه شی دلائل د جانبینو نه پیش کړیشی د هغې نه بعد چونکه دا ستاسو ځے دے مونګ خو میلماتو یو مونګ خو به دے ځائے نه ځو خامخا، اکثر بعضو ځائینو کښې دا سے اوشی، ستاسو نه خو دغه توقع ده چه انشاء الله تاسو به نه کوی بعض ملګری هغه ئی چه یا د بعض ملګرو په وینا سره اوکړي یا هغوي هسے هغه خپل عوامو ته یو انداز سره خبره کول غواړی نو مونږ خو به خامخا د دے ځے نه ځو، اسے نه چه بیا په اخره کښې داسے ویډیوګانی کیکی چه دادي دوئ اوتښتیده او مونږ په خپل ځائے باندے ناست یو فلان، فلان، داسے قسمه نو دابه عهد شکنی وی او دویم نمبر دا چه دا به د میلمستیا د هغه د هغه دغه هم خلاف وی، نو انشاء الله العزیز مناظره به د دغه شرائطو مطابق څنګه چه هغه میزبان هم اوفرمائیل او څمونږ حضرت مفتي صیب هم اوفرمائیل

او ستاسو نه هم څمونږ انشاء الله دا توقع ده چه هم دغه انداز باندے به تر اخیره پورے دغه سنجیدګۍ سره ادب او احترام سره خوش خلقي سره انشاء الله اخیره پورے به دا مجلس سر ته رسو ، نو د دغے به تاسو هم انشاء الله پابندی کوی او څمونږ ملګری به هم انشاء الله پابندی کوي ، نو څما د صدارت د پاره د حضرت مفتی صیب د طرف نه تعین شویدے او حضرت مفتی صیب تاسو هم پیژنئ او الحمد الله ټول پاکستان هندوستان چه سومره دغه دی هغه خلك ئي کوری ، نو هغوی ئي هم پیژنی ، استاذ المناظرین استادی ومرشدی حضرت مولانا مفتی محمد ندیم محمودی صیب حفظه الله ورعاه ، او د دوی سره دغه طرف ته مفتی فیض الحسین صیب حقاني ، دامت براکاتهم العالیه مفتي اکبر علی صیب حقاني دامت برکاتهم العالیه ، او ماسره ښی طرف ته هغه عبدالرحمن عابد صیب دامت برکاتهم العالیه دا معاونین دی ، او انشاء الله ستاسو صدر صیب نه او ټولو ملګرو نه او ټولو ملګرو نه څما دا توقع ده چه تر اخیره پورے به انشاء هغه مجلس په ادب او احترام سره د جانبیونه به (انشاء الله) خیال ساتو ، الله جل شانه مونږه تاسو ته د اخیره پورے هغه مجلس کښې د خوش خلقی او د هر اعتبار سره د یو بل د عزت او د احترم او د ادب کولو توفیق رانصیب کړي.



## (فریق دوم ، صدر ، اشاعة التوحید والسنة)

الحمد لله والصلوة والسلام علی رسول الله اما بعد :

اعوذ بالله من الشیطن الرجیم . بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ

وَ لَا تَسْتَوِی الْحَسَنَةُ وَ لَا السَّیِّئَةُ اِدْفَعْ بِالَّتِیْ هِیَ اَحْسَنُ فَاِذَا الَّذِیْ بَیْنَكَ وَ بَیْنَهٗ عَدَاوَةٌ كَاَنَّهٗ وَلِیٌّ حَمِیْمٌ ﴿۳۴﴾ صدق الله العظیم .

انتهائي قابل قدر قابل عزت علماء کرام میلمانوکوربانو څه د ټولو نه اول د مولانا طیب الرحمن صیب د حضرت مفتی صیب او د هغوي د ملګرو شکریه ادا کوم چه څنګه اصولو کښې وئیلی شوی وه ، معاهده شویوه او په هغه اصولو سره هغه خپل وقت مقرره ته هغه ځائے ته دوئ تشریف راوړو الله جل جلاله دے اوکړي د دے تیمه پورے څومره مونږ په اصولو باندے اوچلیدو چه باقي دا مجلس هم الحمد لله ، الله جلّ جلاله څمونږ او ستاسو په خیر خیریت او عافیت سره اختتام ته اورسوي ، اصل خبره داده چه څمونږ دا مجلس چه دے دا د علماء کرامو مجلس دے نو پکار داده چه علماء کرام چه څومره په معاشره کښې معزز دي څومره د دوئ مقام دے د الله جلّ جلاله په نیز باندے ، د جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم په نیز باندے ، نو پکار داده چه دا علماء کرام په خپله هم د دغه خپل مقام او د مرتبې خیال وساتی ، نو دا یو اهم موضوع او ضروري خبره ده د ټولو نه او دا د مجلس اصول دی بغیر د دینه مجلس اختتام ته هم نشی رسیدلے چه څو پورے د دے لحاظ نه وی ساتلے شوے ، بے اصولی به د یو طرف نه هم نه وي او ځما هسے خپل سوچ دادے چه څه اووایم بے اصولی کیګی او یو طرف نه خبره ګنړی او د بل طرف نه خبر نه ګنړي دا مناظره نه ده دا شور دے ، نو بصورت دیګر به دا که کم

يو کسان هم داسے حالات مينځ کښ پيدا کول غواړی که دے جانب نه ئي او که هغه جانب نه ئي بحيثيت يو ثالث او په دے ويډيو کښ تمام دنيا دا خلق هم ګوری چه دا به د هغه شکست متصور کيګي ، نو دريمه خبره داده چه خبرے به صرف اوصرف صدر اومناظر کوی، د هغے اصول دادي چه بس مونږ د دغی خبرو دغه کړيدے ، انتخاب کړيدے چه انشاء الله العزيز وخدان صيب دغه مفتی صيب دوئ به خپل مينځ کي خبره کوی .
دويم دادے چه صدارت ته د ستاسو د طرف نه انتخاب د مولانا طيب الرحمن شويدے ، دے طرف نه څما شويدے ، نو که دے ملګرو کښ کم بے اصولی وه کمه خبره وه ، نو په کار داده چه د هغه ځائے نه بل يو ملګرے جواب نه ورکوی ، صدر صيب ته دے وائي صدر صيب دے ما مخاطب کړی ځه د خپلو ملګرو ذمه وار، او هغه د ملګرو ستاسو د ملګرو ذمه وار ، ستاسو صدر صيب ، بل خبره اصل کښ ضروری او اهمه خبره هغه د وخت خبره ده ، نو طيب الرحمن صيب ستاسو ځه مشوره ده چه څومره څومره ټائيم د يو ترن د پاره مقرر کړو؟.

نو بس ځه وايم چه ..... دس دس منټه به صحيح ئي کنه؟ ، بس ځه چه خبره پکښ يو حده پوری پوره کيګی ، او کل وقت د دغه.... سره درے ګهنټی صحيح دی؟ که څلور صحيح دی؟ ............صحيح دی جي هغه بس خپل دغه وکړي ، جی ، بله خبره دا اخری وخت د کنه جی نو اخيري وقت کښ به دا خبره ئي چه څما خو خپل سوچ دادے چه ځه وايم چه بغير د دغه نه چه کم تيم اخيرنئ څلور ګنتی کم مقرر شوی په کم آن کښ په کم سيکنډ کښ او په کم مينټ که ايت کريمه هم د يو جانبه شروع وو نو هغه به بس کيګي او بس اخوا به خاموشي وی او

بیا به داسې مجلس ئي انشاء الله دا به یو مثالی مناظره وي یوتاریخی مناظره به وی ، چه مونږ به دلته کینو ، اخیره کښې به د دے ځائے نه په دعاء سره رخصتي کوو، بیا به انشاء الله تاسو هم ځئي او مونږ به هم خپل طرف باندے ځو. پکار دادے چه د اصولو لحاظ هغه اوکړے شی او بله خبره داده چه ځه د دے ملګرو مختصرغوندے تعارف کومه، ځمانوم دے نعمت الله دصدارت انتخاب ځما شویدے دادے ځما سره ځما ورور مولانا سید حسین صاحب او ځمونږ دا متکلم چه دے هغه تاسو ته پته ده جي ، مناظر اسلام ترجمان اهل السنة حضرت العلامه وحید الله وحدان صیب ، دیځوا بل ملګرے چه معاون قاری یاسین حنفي صیب دے او د هغوي سره ځمونږ مشر رور مناظر اسلام جضرت العلامه عبد الرزاق ابوضرار عامری صیب دے جی ، نو دغه ملګری دی پنځه دا د مناظرے د پاره منتخب شولو ، د دے نه علاوه به شپږم کس ځمونږ د طرف نه نه رازی چه یره دلته ځمونږه سره څه معاونت اوکړی او دغسې ستاسو د طرف نه هم که یو ملګرے داسې کوي نو دا به بے اصولی متصور کیږی ، نو اوس دا دغه چه خپل مینځ کښې **مناظرین خپله خپله دغه اوکړي.**



## (ټرن اول : فریق اول)

څه (مفتي محمد ندیم) شروع وکړمه صحیح ده ، دهغې نه علاوه به او وایو ، دا اوس مولوی صیب تاسو سره ټائم څه دے؟ خه بس خیر دے شل کم به یې حساب کړو هغه صحیح ده خو مولوی صیب لږ د څلور کنټئ ټائم فیکس کوؤ خیر خفه نه شئ صحیح ده ، وس شل کم دغه دی اا یولس، نو شل کم دولس، شلم کم یوه شل کم دوه ، شلم کم درے ، ټیك شوه ، شل کم درے باندے به مناظره ختم کوو دلته به مونځ اوکړو ، بیا به هغے نه پس تاسو په خپل طرف ځائے دعا به اوکو مونږ به په خپل طرف ځو.

دے غیر مقلدو سره تاسو په تحیة المسجد عند الخطبه په موضوع باندے څمونږه یو مناظره کتلی وه نو هغے کښې د هغوی چه کم مناظرین راغلی وو ، یقینا ډیر سنجیده خلق وو او هغه مناظره څمونږ داسے یو ماحول کښې وشوه یقینا د هغے نه پس ما کتل دے فیسبك باندے ډیر ښه تاثرات د خلکو راتلل د هرے طبقے یقینا که مونږ دغسے ماحول جاری وساتو ، که تاسو طرف نه یو ملګرے هغه خبرے اترے تیزي وکړي نو خیر دے څمونږ صدر به دغه وکړي مونږ نورو ملګرو څه خپلو ملګرو ته درخواست کوم دوی ته بلکه حکم ورته کوم چه دوي به د عفو معامله کوی ، انشاء الله ، که څمونږ د ملګري نه یو کس دغسے وکړي نو ستاسو ملګرو ته څما درخواست دے چه د عفو معامله وکړي ، انشاء الله .

فری به دغسے یو ، خپله دائره کښې ، انشاء الله

.....راغے ستاسو ملګرے دا دینه اوباسه .

دا دغه که لږ سلوکیږی سلو ئي کړه خیر دے

الحمد لله وکفی وسلام علی عباده الذین اصطفی امابعد فاعوذ بالله من الشیطن الرجیم بسم الله الرحمن الرحیم.

(۱)- (اِنۡ تُسۡمِعُ اِلَّا مَنۡ یُّؤۡمِنُ بِاٰیٰتِنَا فَهُمۡ مُّسۡلِمُوۡنَ) اللّٰهُمَّ صل علی محمدعبدك ورسولك وصل علی المؤمنین والمؤمنات المسلمین والمسلمات.

ما نه مخکښ دواړه طرف نه صدراونو زبردستے خبرے وکړے الله دے مونږه او تاسو دواړو ته به هغے باندے د عمل کولو توفیق راکي او دا ماحول دے الله وکړي چه تر اخیره پورے دغسے سنجیده وچلیږي (دا سلو که ښه)

دویم مولوی صیب : زه به یو خبره وکمه ؟ :

څمونږه او ستاسو په مینځ کښ تیم مقرر شو ، چه هغه به چار کنتي وي.

(۲)- دویم نمبر مولوی صیب څمونږاو تاسو په مینځ کښ موضوع چه کمه ده ، هغه (سماع الاموات) مړي او ریدو، نه اوریدو والاخبره (عند القبور) قبر ته نزدے ، لرے نه ، دا مسئله شرکی ده؟ که شرکی نه ده؟.

(۳)- چونکه د تاسو د ملګرو نه خبره راغلے وه تر اوسه پورے : چه څوك وائي چه (مړی اوري دا منسئله شرکی ده ، بدعی ده ، مشرکان دی ، کافران دی) ، (نعوذبالله) مونږه د دے طرف نه چونکه په دغے اعتبار سره تا سو د مدعی حیثیت لرئ او دا مسئله مونږ وایو شرکی نه ده ، د مدعی علیه حیثیت لرو.

(۳)- دویم نمبر څمونږ د طرف دا مسئله د عهد د صحابه وو نه تر اوسه پورے اختلافی راروانه ده ، نو په دغے اعتبار سره مونږه د مدعی حیثیت لرو او تاسو د مدعی علیه حیثیت لرئ چه تاسو هغه اختلافی

مسئله نه تسليموي نو پدے موضوع به څه خپله دعوی هم بيا ، انشاء الله العزيز اويمه چه څه من وجه مدعی يمه.

(٤)- دويم مولوی صيب موضوع به څمونږ دغه وی (عند القبر) ، د دے وجهے نه به څه د مولوی صيب نه هم دليل هغه غوارمه چه د ده د دعوی سره ئي تعلق وی په هغے کښې د (ميت) لفظ وی ، او دا ورسره ذکر وی چه څوك وائي مړی اوري دا مشرك دے يا د مړو د اوريدو دا مسئله شرکی ده کفری ده هغه ايتونه چه د هغے د دعوے سره تعلق نه وی هغه احاديث چه د دعوے سره ئي تعلق نه ئي هغه پيش کول به صرف د وخت ضياع وی ، خانه پوری به وی ، نو ثواب به پرے ميلاويږی ، مولوی صيب خو په هغے باندے به دعوی نه ثابتيږی ، عوام به هغه په خپله باندے اوګوری فيصله به کوی بيا ، (انشاء الله) .

(٤) دريم نمبر باندے به مولوی صيب انشاء الله چونکه اصول تاسو هم وئيلی دی مونږه هم وئيلی دی ، درے عالمه دی ، عالم دنيا ، عالم برزخ ، عالم اخرت ، عالم دنيا د مور د ګيډے نه انسان دنيا ته راغے د مرګه پورے ديته عالم دنيا وئيلے شی ، په انسان مرګ راغے د دے وخت نه واخله د قيامت د صبا پوری په (وَمِنْ وَّرَآئِهِمْ بَرْزَخٌ اِلٰى يَوْمِ يُبْعَثُوْنَ) دغه وخت ته وئيلے کيږی عالم برزخ .

(٥) دريم نمبر دقيامت د صبا نه چه کم نه ختميدونکی زمانه شروع کيږی ديته وئيلے کيږی ، عالم اخرت ، مولوی صيب دريم عالمه دی ، د يو عالم حالت په بل عالم باندے قياس کول جائز نه دی ، اصولو کښې تاسو هم وئيلی دی مونګ هم وئيلی دی (انشاء الله) قياسونه به نن نه کوو په نصوصو سره به خبره ثابته وو ، بل مولوی صيب د هغے نه مخکښې

(انشاء الله العزيز) څه تاسو ته خپله دعوي ويمه ، که تاسو مطالبه کوله ،
څه ئي بيا درکومه هم (انشاء الله العزيز).

(دا څما دعوى ده ، دعوى د اهل السنت والجماعت ، علماء ديوبند)

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(٦) (١)- مسئله د سماع الاموات عندالقبور د عهد د صحابه کرامو نه تر اوسه پوُرے اختلافی راروانه ده يعنی د صحابه ؤ د وخت نه تر اوسه پورے پديکښ اختلاف دے ، څوك قائل دی د اوريدو څوك قائل نه دی.

(٢)- دويم نمبر البته څمونږ په نزد عند القبور د سماع يعنی د اوريدو قول راجح دے ، څمونږ په نزد په دغے به مونګ دلائل پيش کوؤ. بغير د بل فريق د تکفير تفسيق او تضليل نه.

(٣)- دلته مولوی صيب دويمه دا ، او د پنج پيريانو حضراتو دے مسئلے ته يعنی عند القبور سماع ته د شرکی وئيلو او قائلينو د سماع الموتی عند القبور باندے د شرك او کفر فتوی لکولو سره د جمهور صحابه کرام رضی الله عنهم اجمعين او جمهور امت تکفير لازميږی ، د دے وجهے نه د پنج پيری حضراتو دغه فتوی او مسلك مسلتزم دے کفر لره ، انشاء الله العزيز ، څه به په دغے باندے مخکښ څم تفصيل به پيش کوم.

(٤) - خو يو مولوی صيب ما اويل : مسئله تر اوسه پورے اختلافی راروانه ده ، مونږ دا اختلافی تسليمو ، لهذا پديکښ يو خو دا ده چه قران نص تاسو راواخلئ ، حديث رسول الله صلى الله عليه وسلم راواخلئ تيګ ده ، د دينه خکته د چا قول راخستل هغه به د ستاسو د پاره

فائده مند ځکه نه وی چه ما د اول نه اوئیل چه اختلافی راروانه ده ، نو چه اختلافی ده نو د چا عبارت ته ګوتې ورول عبارت پیش کول دغه به تاسو د پاره جائز نه وی ، یو.

(٥)- دویم نمبرما اوئیل : ده اختلافی ، خو مولوی صیب کم اختلافی ، چه دا راروانه ده ، د عهد د صحابه نه تر اوسه پورې ، تاسو پنج پیریانو حضراتوکښ او په هغوی کښ فرق دادې ، هغه په مواضعو منصوصه کښ یعنی په کمو ځګونو ځاینو کښ چه راغلی دی په نصوصو کښ چه په دې دې ځې کښ اوری ، او هغوی په دې ځې کښ اوری نورو ځګونو کښ نه اوری.

دویم تاسو ئي وئ ، تاسو وائي ، دې ځګونو کښ تاویلات کوی په مواضعو منصوصه وو کښ ، (انشاء الله العزیز) ، هغه به بیا مونږ روسته باحواله پیش کړو.

(٦)- نو ستاسو او هغوی هغې کښ فرق دې ، دې وجهې نه مسئله هم پدې باندې جوړه ده ، مړي اوری یا نه اوری ، ځمونږ د هغې سره (قسم دې) هیڅ څه کار نشته دې ، واوریدل اوریدی ، نه دې اوروي ، نه دې اوری ، خو په دې سره د امت تکفیر کول د صحابه کرامو تکفیر کول څنګه چه ستاسو د فتوی نه لازمیږی ، مونګ صرف په اقه بنیاد باندې د دې مسئلې وضاحت وکو، او شیخ سرفراز خان صفدر صیب نور الله مرقده ، چه پدې موضوع کتاب لیکو ، هم دقه عذر یئ لیکلې چه پدې موضوع مونږ قلم اوچت کړې د هغې وجه دا وه ، انشاء الله العزیز ، مخکښ به بیا څه پیش کوم ، ما خپله دعوی پیش کړه.

(۷)- د دے د پاره به څه اول د د ينه مخکښ د دلائلو نه به مخکښ ما خپل خبره کښ دعوی کښ اويله چه د پنج پيری حضراتو په نيز باندے دا شرك دے ، د دے وجهے نه د دے معتبروکتابونه څه په هغه موضوع باندے پيش کوم ، دا ما سره (۱) **نداء حق** ﴿جلد/۲ ص/۱۲۸﴾ ده ، دے په خپل دغے کتاب کښ ليکی : (واقعی سماع موتی کا عقیدہ شرک کا پھاٹک ہے) او په دغے لاندے بيا دے تفصيل ليکي .

(۲)- دويم نمبر ما سره دے ، **مقالات نيلوی** ﴿جلد نمبر/۱/ص ۱۲۷ او صفحه نمبر/۱۲۲﴾ دے په دغے کښ په واضحو الفاظو کښ دے مسئلے ته ، دے مسئلے ته ، دے شرکی وائي ، دے وائي دا مسئله شرك دے ، کفر دے . ﴿صفحه نمبر /۱۲۷﴾ باندے .

خه : (سماع موتی کے عقیدے کو شرک مولانا حسین علی رحمہ اللہ اور ان کے دوسرے تلامذہ کی طرح وہ سماع موتی کے عقیدے کو شرک نہ سمجھتے تھے مگر شرک کا چھوٹ دروازہ ضرور سمجھتے تھے) ستاسو د مشرانو خبره کئ .

(۳)- دريم نمبر ، دا ما سره بيا ستاسو **مجموعه رسائل** د نيلوی صيب (ج/ ۱ /ص۶۰۷) ده ، دے وائي : مسئله سماع موتی ، خه دے وائي دا د ملحدينو ايجاد دے او د دغے تکفير کوی .

(٤)- څلورم ، (شرک کیا ہے) د بنديالوی صيب (صفحه/ ۷ ) دے وائي : سماع موتی او د بزرګانو د وسيلے پشان موضوعاتو باندے دلائل په خپل ګمان ورکولو سره الته د مشرکينو او د مبتعينو بلا اجرت وکيلان جوړشوی دی چه کم ستاسو مشر .... مکتبه اشاعت محله جنګي مولوی نقيب حنيف صيب ئي ترجمه کړيده.

(٥)- داځما سره مولوی صیب مخکښ **نداء حق** (جلد/٣ص/٣٣٨/) ده ، دے په دغے کښ هم وائي ، سماع موتی : (پس حق یہی ہے کہ سماع موتی بلکل نہیں ، اور کوئی حدیث صحیح یا آیت سماع موتی پر دال نہیں ، بلکہ سماع موتی لوگوں کیلئے منجر الی الشرک ہے) دا شرك طرف ته راخکونکے دے ، دا شرك طرف ته ئي راکاګئ ، (٦)- دغه رنګے مولوی صیب دا ځما سره نداء حق جلد(نمبر/٣/ص/١١٠) دا ځما سره ستاسو د خان بادشاه مولانا صیب .....

(٦)- (البرهان الجلی) دے ، د دے (صفحه نمبر/ ١٩٨) ده ، دے وائی : (موافق اعمال صالحہ اور اطاعت کو ذریعہ بناکر وسیلہ بنانا اور اس کی تین قسمیں ہیں) پدیکښ بیا مخکښ دے بحث کښ د سماع الموتی موضوع ته رازی ، دے وائی : سماع الموتی ، دے پخپل دغه کتاب په دغے صفحه باندے دیته (شرك)وائی ، مولوی صیب .

(٧)- دغه رنګے مولوی صیب ځما سره جي کتاب ورته ورکړئ . دغه رنګے مولوی صیب ځما سره **مقالات نیلوی** ، د دے (جلد نمبر/١/ اول دے (صفحه نمبر/١٢٢) دے ، هم ، دے وائي : (سماع الموتی شرک کا چور دروازہ ہے) دے وائي : سماع الموتی د شرك د چور دروازه ده.

(٨)- دغه رنګے د شیخ طاهر صیب په ....... (خیر دے چه ځما تیم ختم شی بیا د کتاب مطالبه اوکی خیر دے خو په مینځ کي مداخلت مه کوی) .

**....... دے وائي شیخ طاهر حیات و خدمات (صفحه نمبر/٢١ صفحه نمبر/ ٦١ /ص نمبر/ ١١٦ صفحه نمبر/ ٢١٧ صفحه نمبر/ ٢١٨ ) دا صفحه (نمبر/ ٦١) باندے یو ځائے لیکی** : (سماع موتی اور انبیاء صالحین کا وسیلہ

وہ برگ حشیش تھی جنکی چاؤں میں شرک کو پناہ ملتی تھی) یعنی سماع الموتی تقریبا دلته د شلو/۲۰ نه زیاتی حوالے ما راوړی، د دسو(۱۰) پورے تقریبا ما پیش کړے ، دغه ټول وائي چه دا مسئله شرك دے .

(۸)- دویم نمبر مولوی صیب ، ما وئیلی وو چه دا مسئله د عهد د صحابه کرامو رضی الله عنهم اجمعین نه اختلافی راروانه ده .

## (دلائل د مفتي ندیم په دعوی خپله باندے)

ځه په هغے باندے دلائیل پیش کومه انشاء الله حواله جات پیش کوم ستا د بزرګانو هم د خپلو مشرانو هم ، علماء دیوبند چه (کم مُسَلَّمْ حضرات) دی .

خو د هغے نه مخکښ ما دعوی دا کړیوه چه ځمونږ په نزد راجح مسلك دادے ، چه عند القبر اوری .

(۱)-دافتاوی د مفتی محمود ده مفکر اسلام فاتح قادیانیت حضرت مولانا مفتی محمود صیب نور الله مرقده ، فتاوی مفتی محمود (جلد/۱/ص ۱۷۵) دے وائي : (مسئلہ سماع موتی صحابہ رضوان اللہ اجمعین کے زمانے سے مختلف فیہ چلا آرہاہے، حضرت عائشہ رضی اللہ عنہا سماع موتی کا انکار کرتی ہے، اور ایت (فانک لاتسمع الموتی) سے استدلال کرتی ہے، اور دیگر صحابہ رضوان اللہ علیہم اجمعین سماع موتی کے قائل ہیں، ترجیح میں اختلاف ہے ، بعض علماء عدم سماع کو راجح قرار دیتے ہیں، اور بعض سماع کو ، ہمارے ہاں قول ثانی راجح ہے) زمونږ په نزد دویم قول چه عند القبر د سماع الموتی دے ، دا زمونږ په نزد راجح دے ، لاندے د هغے دلائل ورکوی .

(ترن اول :فریق دویم ، مولانا واخد الله وحدان صاحب)
(دواحد الله وحدان صاحب د مفتي ندیم په دعوي باندے رد او اعتراضات)

نحمده ونصلی ونسلم علی رسوله الکریم اَمّا بعد :

(۱)- مفتی صیب ، اولنۍ خبره دا اوکړه چه تاسو وائی چه سماع الاموات عند القبور دا شرکی عقیده ده ، کومی حوالے چه دے پیش کړے په دیکښې یو لفظ د (عند القبر) نه وو ، حضرت جی .

(۲)- دویمه خبره داده چه تاسو اوئیل چه سماع الاموات د یته مونکه عدم سماع ته یا سماع الاموات ته مونکه راجح مسلك وایو، او مونکه فتوی نه لکو تاسو وئیلی وو، چه د قرا ن مجید د یو ایت نه ئي اوخائي که چا اوخودل چه یو ایت کښې دا وو چه مړی نه اوری ، دس هزار روپۍ به انعام ورکوم ، او تحریف به نه کوی ، بی بی عائشه رضی الله عنها د (انك لا تسمع الموتی) نه استدلال کړے وو.

(۳)- دا ځما سره **(الخیر الکثیر/....)** دے او پدیکښې دے وائي : تحریف دا د یهودو او د مشرکانو صفت دے ، حضرت جی ستا په فتوی باندے بی بی عائشة رضی الله تعالی عنها **(نعوذ بالله)** مشرکه ده ، صحیح شو جي .

(٤)- دا خو دلته کښې دے جدا دعوی پیش کړه ، خو مخکښې دے بل شانتے دعوی پیش کړیوه .

(٥)- دویم دا ستاسو هاغه مشر دے چه د صوابی په مناظره کښې تا وئیلي وو چه ځما دا مسلك دے ، دا امام اهل سنة امام فلان فلان ، دا

دے **سماع الموتی** په (۱۹٦/صفحه) کښې لیکي : (اور معتزلہ نے سماع موتی کا انکار کیا ہے) ، معتزله وو د سماع موتی نه انکار کړے ، ته خو د راجح او عدم راجح والی قول کوے ، دلته دے فتوی مشر لګولی ده چه دا معتزله دي ، ستا د مشر په فتوی باندے بی بی عائشة رضی الله عنها معتزله ده نعوذ بالله ، لکه څنګه چه تاسو فتوی لګوئ داسے دے مشرانو لګولی دی ، حضرت جی.

(٦)- اوس دیخوا اوګوره : تا اوئیل چه څمونږ عقیده داده : چه مړی نه اوریدل دا راجح مسلك دے ، دا درته خیم **حیات برزخیه** د مولانا الله یار خان چکړالوی صاحب ، (١٦٤)صفحه کي دے لیکي وائي : (اہل سنت والجماعت کا اجماعی عقیدہ ہے کہ میت سنتا ہے خواں کسی بھی حالت میں ہو، خواں کسی بھی حالت میں ہو) نو پدیکښې (عند القبر، عند القبر) هم نشته ، څه چه رد پیش کوم نو په هغے کښې به بیا (عند القبر) لفظ نه ئي ، څکه څما په کتابونو کښې هم (عند القبر) لفظ نه وو ، ستا په دے کتاب کښې هم عند القبر لفظ نیشته .

(۷)- دویم تا اووئیل : د صحابه وو د دور نه د اوسه پورے اختلافی ده ، دے څه وائي : (خارجی اور معتزلہ کا عقیدہ ہے کہ میت نہیں سنتا) د خارجیانو او د معتزلو دا مسلك دے چه مړی نه اوری .

نو حضرت جي ته وائي مونږ د راجح او عدم راجح قول کوو دا مشر دے وائي چه څوك د نه سماع قائل ئي هغه معتزله دی او هغه ګمراه او خوارج دی .

(۸)- بل حضرت جي دا ځماسره کتاب دے **البصائر** ستاسو د مشر پديکښ دے ليکی ، په (صفحه/۲۱)کښ ليکی وائي : (واما انكار عائشة رضى الله عنها فانما هو لاجل تمسكها بظاهر قوله تعالى : (اِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتٰى).

بي بی عائشة رضى الله تعالى عنها دليل هغه د وجهے د ظاهر د نص نه دے.

او بيا په (صفحه نمبر/ ۷٦ )کښ ليکی ، د ظاهر د نص نه استدلال کول دا کفر دے ، د ظاهر د نص نه استدلال کول دا کفر دے ، د دے مشر په فتوی باندے بی بی عائشة رضى الله تعالى عنها كافرهِ ده (**نعوذ بالله**) ، د دے وجهے نه چه ته د راجح او عدم راجح قول کوی دا بے ځايه دے.

(۹)- بل حضرت جی ستا اصل عقيده داده دادے **تسكين الصدور** ( ۲۰۹ /صفحه) کښ لیکی وائي : (*زنده اور مرده فہم ، ادراک، شعور اور سننے میں برابر اور یکساں ہیں ،برابر اور یکساں ہیں*) قران مجيد کښ دی : ﴿وَمَا يَسْتَوِي الْاَحْيَآءُ وَلَا الْاَمْوَاتُ﴾ ستا مشر وائي ژوندے او مړے برابر دی ، قران کښ رب العلمين وائي ، ژوندے او مړے برابر نه دی ، اوس ئي ځانله ګرځوه چه کم تاخ کښ وراچوی .

(۱۰)- حضرت جي اوس ديته اوګوره دا ستا کتاب **تحقيق المتين** په ديکښ دے ليکی : (*جس طرح زندہ قریب سے سنتا ہے دور سے نہیں، اسی طرح مردہ قریب سے سنتا ہے دور سے نہیں*)۔عند القبر- لفظ نشته صرف (قريب) لفظ دے ، بيا پديکښ لاندے ليکی په (صفحه نمبر/ ۲۸۱) کښ ليکی ، وائي چه : (*نہ قریب سے نہ بعید سے کسی وقت نہیں سنتا، ایسا عقیدہ رکھنا بھی گمراہی*

ہے)، داسے عقیدہ گمراهی ده : (بدعت ہے معتزلہ والا عقیدہ ہے) دا دے **تحقيق المتين** وائي دا د معتزله ؤ او دارنګی بدعقیده د خارجیانو او د ګمراهانو مسلك دے ، نو یو طرف ته خو وائي : چه راجح مسلك دادے او مشرانو چه دے کم اقوال پیش کړی ، ستا او ستا د مشرانو یو بل سره موافقت نشته ، (دا لګ ساعت کیده).

(۱۱)- اوس تاسو ویل : چه تاسو به فتوی پیش کوی چه تاسو وائی چه دا شرکی عقیده ده نو هغه درته څه پیش کوم.

## (دلائل د واحدالله وحدان صاحب)

(۱)-داځما سره **تعليم الاسلام** دمفتی کفایت الله صیب ، په دیکښ لیکی : (یہ اعتقاد رکھنا کہ فلاں پیغمبر یا ولی ہمارے تمام باتوں کو دور و نزدیک سے سن لیتے ہیں) روستو لیکی : (یہ سب شرک ہے) پدے نزدے کښې - عند القبر- هم راځی حضرت جی.

(۲)- دارنګے ځما سره دا غیر مقلدینو ، (دے باندے لګ لاس کیده) ، (کچھ دیر غیر مقلدین کے ساتھ) دا یو کتاب دے ، پدے باندے د شیخ سلیم الله خان صیب تقریظ هم دے ، پدیکښ په (**صفحه نمبر ۲٤٦**) کښې لیکي وائي : (سماع موتی بریلویوں کا مشہور عقیدہ ہے) سماع الموتی د بریلیانو مشهوره عقیده ده ، ته د راجح او د عدم راجح قول کوئے مشران دے بل څه وائی حضرت جی.

(۳)- دارنګے دا ځما سره کتاب دے **عقائد اسلام** د مولنا عبد الحق حقانی صیب ، دے وائی (۱۳۳ صفحه) کښې : (جس طرح نزدیک و دور

کی بات سنتا ہے اللہ تعالی اور کسی کو اسی طرح سمجھا مشرک ہو گیا) حضرت جی : دے وائي څوك دے داسے او منل دا مشرکان دی ، دا زما سره حقانی عقائد اسلام دے .

(٤)- د مفتی محمود د فتاوی نه دے حواله ورکړے وه (٣٤٩ /صفحه) ده وائي : (ہر وقت ہر بات کا دور سے اور قریب سے سننا اللہ تعالی کا خاصہ ہے کسی اور کیلئے اسکا ماننا اسلامی عقیدہ نہیں ) د بل د پاره دا منل اسلامی عقیده نه ده .

دادے مفتی محمود صاحب د هغه فتوی خو تا مفتي محمود .

(٥)- تا زمونږ د کتابونو نه یو حواله پیش کړه مفتی صیب په هغے کښ دا وو چه دا مفضی الی الشرك دے (صفحه نمبر/١٢)دا **جمال قاسمی** د شیخ قاسم صاحب پدیکښ (صفحه نمبر ١٢) کښ لیکی : په دے دور کښ سماع الموتی منل دا سړے شرك ته راکاګی داسړے ، عبارت داسے دے : (اس زمانے میں اس امکان استماع کا بھی چرچا کیا جائے) نو بیا پدیکښ لیکی چه دیکښ دینی نفع متصور نه ده (البتہ قوت مضامین شرکیہ کا گمان غالب ہے) دا حواله به ورکړے جي .

(٦)- دارنګے حضرت جي دا څما سره دے **امداد المفتیین** د مفتی شفیع رحمة الله علیه ، دا دے (٤٤٦ صفحه) کښ لیکی : (مزار اولیاء کرام پر بدین نیت جانے والا کہ میرے اواز کو بغیر واسطہ امر الہی اولیاء سنتے ہے کافر ہے یا مؤمن ؟جواب: مؤمن ہے مگر اسکا عقیدہ اور خیال غلط اور بے دلیل ہے، اور اگر اس عقیدے پہ اصرار کریگا تو بدعتی کہلائے گا) دے وائي هغه ته به بدعتی وئیلے کیږی ، تا جی **معارف القران** د مفتی شفیع صیب پیش کړے وو د دے په جواب کښ

مے درته حضرت جی دا اوئیل ، چه دیته بدعتی وئیلے کیږی ،کوم مسلك چه ستاسو د دے کتابونو نه ثابت شو.

(۷)- اوس دا څما سره **اتمام البرهان** ستاسو د شیخ سرفراز صفدر صیب (ص۹٤صفحه) کښې لیکی : (جیسے قریب سے کسی کو پکارنا جائز ہے اسی طرح بعید سے بھی پکارنا جائز ہے، اور جس طرح قریب سے کوئی سنتا ہے اسی طرح دور کی مکان اور بعید سے کوئی سنتا ہے تو یہ خالص شرک ہے) دا خالص شرك دے ، حضرت جی ، دا ورسره اوګوره .

(۸)- دارنګے دا څما سره **کتاب التعریفات** د علامه جرجانی صیب دے ، (۹٤/صفحه) کښې لیکي : (الصالحية فرقة من المعتزلة وهم جوزوا قيام العلم والقدرة والسماع بالميت) د فرقه معتزلی دا مسلك دے چه مړی ته سماع ثابته ئي.

(۹)- دارنګے څما سره ده **مجموعة الفتاوی** د عبد الحی صیب (٤٦صفحه) کښې دا لیکی : (اور دور اور نزدیک سے پکارنے والے کی اواز سنتا ہے) په جواب کښې لیکی وائي : (ایسے شخص کا عقیده فاسد ہے بلکہ اسکے کفر کا خوف ہے) د ده سره چه دے د کفر خوف دے .

(۱۰)- دا رنګے دا څما سره دے **کفریه الفاظ** په دیکښې په (صفحه نمبر ۲۹) کښې لیکی : (جس طرح اللہ تعالی دور اور نزدیک سے سنتا ہے ، کسی نبی یا ولی وغیرہ کو بھی ایسا ہی سننے والا سمجھنا، جبکہ قران کریم میں ہے (ان اللہ ہو السمیع البصیر) الله تعالی چه دے هغه سمیع دے او بصیر دے . بیا لاندے لیکی (یہ نظریہ شرک ہے)دا نظریه شرك ده . دا می درته هم پیش کړله .

(دعوی د مولانا واحدالله وحدان ، دیوبندي ، حنفي ، صاحب)

دَ دِ ینه بعد څه حضرت جی دا درته ویم : څما دعوی واورئ حضراتو ، څما دعوی دا واورئ که د (دور) او د (نزدیک) خبره کوی ، انشاءالله څه په هغے باندے د اکابرینو یو فتوی پیش کوم څما د طرف نه دعوی دا شوه ، څمونږ دعوی داده د ځان نه به دعوی ، هغه نه جوړوی ، په حکم باندے تاسو مخکښ لاړی خو خیر څه درته ویم .

څما دعوی داده (المیت لا یسمع عادةً ، المیت لا یسمع عادة) ، دا څه ثابتوم د قیاس اقترانی نه ، قیاس اقترانی دیته وائی : چه جوړ وی د صغری او د کبری نه یا **شرح تهذیب** والا **مرقات** والا **ایساغوجی** والا تعریف کړے چه نقیض یا نقیض د نتیجے یا بعینه دا نتیجه په قیاس کښ مذکور نه وی ، څما صغری ده (المیت فی القبر) کبری دا شوه (وکل ما یکون فی القبر فهو لا یسمع عادة) نتیجه دا شوه (المیت لایسمع عادة) حضرت جی اوس ، اوس گوره جی ، د دے نه بعد دا چه دا ما تاله د شکل اول نه دا قضیه جوړه کړله چه : چه جزء مکرر په مینځ د صغری او کبری کښ چه ورته ، حد اوسط هم وئیلے شي ، نو ، (جزء مکرر) حد اوسط چه محمول وی په صغری کښ او موضوع وی په کبری کښ ، او تاته به پته وی چه د شکل اول د پاره شرط دے ایجاب د صغری او کلیت د کبری ، ایجاب د صغری او کلیت د کبری ، پدیکښ شپاړس ضروب جوړیږی شپاړس ضروب چه کله جوړ شول ، دیکښ ضروب منتجة څلور دی څما پکښ اولنے دے .

## (حکم د دعوی)

دعوی ما دا پیش کړه چه (المیت لا یسمع عادة) میت عادتا نه اوری او څما د طرف نه حضرت جی حکم دے په مشروطے عامے سره (کل میت لا یسمع بالضرورة ما دام میتا ، کل میت لا یسمع بالضرورة ما دام میتا).

## (دلائل په دعوی باندے)

پدے دعوی باندے څه دلائل پیش کوم ، څما سره د ټولونه اولنے (۱)ایت کریمه دقران مجید نه دسُوْرَةِ فَاطِرْ (ایت نمبر/١٤) دے.



## (فریق اول مفتي ندیم ، ترن دوم)

الحمد الله وکفی وسلام علی عباده الذین اصطفی اما بعد :

## (جواب د دلائلو د خصم نه)

(۱) - مولوی صیب د ټولو نه اول خبره وکړه ، ویل : تاسو چه کمے حوالے پیش کړے دیکښې د (عند القبر) لفظ پکښې نشته دے ، حالانکه مولوی صیب مونګ اوله خبره اوکړه چه شیخ سرفراز خان صفدر رحمه الله په دے موضوع باندے کتاب لیکلو، هغه بار بار وضاحت کوو ، چه مونګ د (عند القبر) خبره کوو ، دا کوره دا ---

(۱) **سماع الموتی** کم کتاب چه تا پیش کړو (صفحه/ ۱۰۵) (جو حضرات سماع موتی کے قائل ہے وہ یہ نہیں کہتے کہ مردے دور دراز سے بھی سنتے ہے وہ صرف اسکے قائل ہے کہ قبر کے پاس اگر سلام وکلام کیا جائے، تو وہ سنتے ہے، دور دراز سے عدم سماع پر سب کا اتفاق ہے، کیونکہ دور سے سنے کا مسئلہ غیر اللہ کے بارے میں عقیدہ علم غیب اور حاضر ناظر پر متفرع ہے، اور انکا کفر ہونا واضح دلائل سے اپنی جگہ پر ثابت ہے، بحمد اللہ تعالی ہم نے ، ازالۃ الریب اور تفرید النواظر وغیرہ میں ان پھر مبسوط بحث کردی ہے ) دا خو د موضوع نه خارج بحث دے مولوی صیب ټول کتاب لرے ، نزدے ، لرے ، نزدے ، لرے ، دا خو مونګ وضاحت کړے ستا مشرانو د دے په جواب کښې کتابونه لیکلی چه هغه شیخ وضاحت کړیدے ، ته عند القبر، قبر ته نزدے ، د لرے نه ، هغه دواړو ته شرك وے ، اکابر دواړو ته شرك نه وائي دا صفت د الله دے ، چه دلرے ، نزدے نه ، اوری ، مونګ وایو یو ژوندے انسان هم د لرے نه نه شی

اوریدے مړے خو لا څه کے ژوندے انسان هم د لرے نه نشی اوریدے ، مولوی صیب خبره خلط ملط کوه مه .

(۲)- دویم نمبر مولوی صیب اووئیل وائي ، ده اووئیل د چه زه به هزار روپۍ ورکوم ، که چا د قران د ایت نه ثابت کړه پوره لس زره چه مړی نه اوری ، مولوی صیب یو لاکه درله درکوم په دے ځائے کښ ثابت که ، قسم دے ، یو لاکه می جب کښ پرتی دی درتے درکوم خو قران وخایه چه مړی نه اوری .

ځما دا چیلنج وو او (انشاءالله تاقیامت تمام مماتیوں کے سروپر قرض رہے گا) (انشاء الله) څومره چه په قبرونو کښ دی ، څومره ، چه ژوندی دی ، وس بقدر غیرت دړ پکښ بسم الله وکړه تا خو ویل چه کم تاخ کي واچے هغه الفاظ دے کنده الفاظ دے استعمال کړل معافی درته کوم ، خو څه ویم که د مور حلالی یئ د څکلی حلالی ، کم یو دړ پکښ وي بسم الله وکه ایت پیش که ، لس زره نه یو لاکه په ځے درکوم .

(۳)- نمبر ، دریم ، دے وائي : سماع الموتی د معتزله وو مسلك دے (ماشاء الله) مولوی صیب او بیا د د ے نه خبره څه راواخسته وائي تاسو دا وائي چه د سماع الموتی قائلینو په منکرین باندے مونګ فتوی نه لګؤ ، حالانکه شیخ رحمه الله هم په دقه ځائے کښ دیته جواب ورکوی ، دوی ، وائی : چه د معتزله وو مسلك دے (سماع) اوریدل ، نو شیخ رحمه الله ورته جواب ورکو ، نا ، د معتزله وو مسلك دادے چه هغوئ د نه اوریدو او عدم سماع او عذاب قبر خلاف دی ، عذاب قبر ، ثواب قبر ، او فهم د میت دا نه منی ، الزام ئي ورته ورکړے دے ، مولوی صیب جواب ئي ورته کړے ، سترګی کولاو که ، دوهکه مه کوه .

(٤)- څلورم نمبر دے ، د الله يار خان صيب كتاب ئي پيش كړو ، د يو بريلوى كتاب ئي راواخستو هغه ئى پيش كړو ، وائي : ستاسو يو مبشر ليكلي ، مولوى صيب مفتى فريد صيب رحمه الله ورته بريلے ، گمراه ، ليكلے دے هغه ته ، څمونږ اكابر ، ورته گمراه وائي ، ته يو بريلے راخلي ، څمونږ په سر باندے راتوكے.

(٥)- بيا مولوى صيب د اغے صيب نه پس وائى، وائي ډاگى شيخ صيب تأويل ته كفرته وئيل ، مولوى صيب گوره د چا عبارتونه راخستل صغرى ، كبرى ،ملاوهل او په هغے نتيجه مرتب كول ، مولوى صيب د دحد درجے بيغرت توب دے او كم جهالت دے ، ډاگى شيخ صيب رحمه الله ، په خپل اخيرنى دستار بندى كښ هم د دے خبرے وضاحت كړے وو څه په هغے كښ ميلمه وم ، چه د دوره تفسير ختم وو ، څه ميلمه وم ، څما د عبارت مطلب څه دے ، ام المؤمنين د يو څيز نه رجوع كړيده ، هغه بيا يو څوك راخلي په هغه پسے خندا پكاره ده د هغه دا قسمه تاويلات د نصوصو په مقابله كښ دغه كفر دے ، ته هغه راخلي او ام المؤمينين ته ئي راجع كے ظالمه د خپل ځان نه ئي ستنے .

(٦)- بل دے مخكښ وائي : چه شيخ صفدر صيب رحمه الله وائي : چه دواړه په فهم كښ برابر دى ، او بيا ايت څه وائي ﴿وَ مَا يَسْتَوِى الْاَحْيَآءُ وَلَا الْاَمْوَاتُ﴾. نو هغے كښ دادى چه دواړه په فهم كښ نه دى برابر ، ايتونه كښ دا دى ، مره دا وائي څه ؟ (خپل ، خپل تېرن تېرن) بيا د قران مجيد زبردست تحريف دے اوكړو ، مولوى صيب كه نه ئي د يو مفسر حواله ، مُسلَّم مفسر حواله پيش كه پدے باندے ، شپږم.

(۷)- (ووم نمبر/۷) دے ، د مفتی کفایت الله صیب څومره حوالے ، هسے خانه پوری ئي وکړه پدیکښ (نزدیک دور سے دور نزدیک سے دور نزدیک سے) ما ورته ویل : قرآن راواله ، ظالم سره، قران نشته دے او هغے عباراتو کښ هم تحریف کوی خو ما لاول اویل : چه د لرے نه اوریده زما او ستا په مینځ کښ هغه ما به النزاع نه ده ، مولوی صیب.

(۸)- د هغے نه پس دے وائي سماع د بریلیانو مشهوره عقیده ده ، حالانکه دے صرف سماع الموتی نه حسابوی ، دوی وائي د هغے نه حاجاتو نه اغستل فلاں فلاں د ټول تفصیل کوی ، کنه تیم ودروئ څه درته دا پوره عبارت ویمه ، دا : (کچھ دیر غیر مقلدین) هغے کښ دے تحریف وکړو ، مولوی صیب خیانت نه دے کار واخستو، هغه صرف سماع الموتی ته نه وائي بخپله د سماع الموتی قائل دے .

(۹)- بل مولوی صیب مخکښ خبره وکړه نهم نمبر کښ ، وائي فلانکی لیکلی دی چه بغیر د مشئت د الله نه د اوریدلو عقیده کفر دے ، مولوی صیب بغیر د مشئت د الله نه صرف د مړی د پاره نه که د ژوندی د پاره قائل ئي کافر ئي ، د ژوندی د پاره بغیر د مشئت د الله نه د اوریدو عقیده لرل کفر دے مولوی صیب ﴿وَمَا تَشَآءُوْنَ اِلَّآ اَنْ يَّشَآءَ اللّٰهُ﴾ قران (وائي) اراده هم نه شی کولے اوره ول اوریدل خو لرے خبره شوه .

## تنقیحات د مفتي ندیم په دعوی د واحد الله وحدان صاحب باندے

(۱۰)- (لسم نمبر/۱۰) ، دے وائي (المیت لا یسمع عادة) میت عادة نه اوری مولوی صیب ستا په دعوي باندے تنقیحات ته غوږ کیده .

(۱)- (اول نمبر/۱) : تاسو **سماع الموتی عند القبور اختلافی مسئله** ګنړی او کنه یو ؟

(۲)- (دویم نمبر/۲) ، کمه دعوی چه دے لیکلی ، په دے کښ حکم نشته دے ځوك چه وائي عند القبر هغوی اوري د هغوئ څه حکم دے ځوك چه وائي نه اوری د هغے څه حکم دے؟

(نمبر/ ۲) ، که ئي نه ګنړئ تاسو اختلافی ، نو ځوك چه ئي اختلافی ګنړی د هغوئ څه حکم دے؟

(۳)- (دریم نمبر/۳) : او که ګنړی ئو ځوك ئي چه اختلافی نه منی نو د هغوی څه حکم دے .

(٤)- (څلورم نمبر/٤) ستاسو په نزد په مواضع منصوصة کښ سماع صرف د روح د پاره ثابت ده او که د روح او جسد دوارو د پاره ، ځما خبره مولوی صیب په واضح الفاظو سره واوره بیا لسټ هم درکم .

(٥)- (پنځم نمبر/٥) ستاسو په نزد سماع الموتی عند القبور شرکی مسئله ده که نه ؟ ، پس دغه اومره او وایه ، عند القبر .

(٦)- (شپږم نمبر/٦) هسے دیځوا اخوا مه کوه ، اوایه ، وایه شرکی ده یا نه ده په دوټوك الفاظ کښ جواب وکړه ، بیا په قائلینو د سماع الموتي عند القبور باندے ستاسو څه فتوی ده ، ګمراه ورته وائی که نه اهل الحق ورته وضاحت وکړه ؟.

(٧)- (اووم نمبر/٧) دا سماع الموتی مسئله اجتهادی ده که غیر اجتهادی ده وضاحت وکه ؟

(٨)- (اتم نمبر/٨) تاسو سماع الموتی نه مطلقا منکر، ئي ، او که په بعض مواضعو کښ استثناء منی؟ .

(۹)- (نهم نمبر/۹) په مواضع منصوصة کښې تاسو دا منئ نو دا مافوق الاسباب ګنړئ که ماتحت الاسباب په مواضعو منصوصه کښې ؟

(۱۰) – (لسم نمبر/۱۰) په میت کښې داوریدوصلاخیت شته دے مولوی صیب که نشته دے مولوی صیب دغه اومره دو توك الفاظو کښې اووایه.

(۲)- (دویم نمبر/۲) : دغه ستا دعوی نه ده د دعوے وضاحت وکړه .

(۳)- (دریم نمبر/۳) : ما وئیلی وو دا مسئله د عهد د صحابه ؤ نه اختلافی راروانه ده ، په هغے باندے مولوی صیب ما معارف القران پیش کوو تیم ختم شو ، څه هغے ته څم ، دا **معارف القرآن** دے ، د دے (جلد نمبر ٦) دے (صفحه نمبر ٢٠٦) ده ، دے وائي : (یہ مسئلہ کہ مردے کوئی کلام سن سکتے ہے، یا نہیں؟ ان مسائل میں سے جن میں خود صحابہ کرام رضی اللہ عنہم کہ باہمی اختلاف رہاہے ،عبد اللہ ابن عمر سماع موتی کو ثابت قرار دیتے ہے اور ام المؤمنین حضرت عائشہؓ اسکی نفی کرتی ہے اسلئے دوسرے صحابہ وتابعین میں بھی دو گروہ ہو گئ بعض اثبات کے قائل ہے بعض نفی کی).

(۳)- او په دغے باندے مولوی صیب دا څما سره **خير الفتاوى** د دار العلوم د دیوبند ده د اوس نه واوره مولوی صیب دے هم په (صفحه ۳۰۱) کښې وائي دا مسئله اختلافی ده .

(٤)- دغسے مولوی صیب دا څما سره **كفاية المفتى** د دے (جلد نمبر/١-٢ صفحه نمبر/٢٠١) ده دے وائي : (مسئلہ سماع الموتی قرون اولی سے مختلف فیہ چلا آتا ہے) صحابه کرامو په مینځ کښې اختلاف دے او تراوسه پورې اختلاف دے .

(٥)- دا **فتاوی رشیدیه** ده د دے (صفحه/١٥٢) دے ، دے وائي :
(سماع الموتی کا مسئلہ بھی صحابہ کے وقت سے مختلف فیہ ہے مع ہذا اسلام کرنے سے کوئی منع نہیں کرتا،
بحر حال یہ مسئلہ مختلف فیہ ہے اس میں بحث مناسب نہیں)۔

(٦)- دا مولوی صیب د شیخ غلام الله خان صیب رحمه الله تفسیر دے چه تاسو ئي ځان ته منسوب کوئ خو تاسو ته نسبت صحیح نه دے ، دے په خپل تفسیر کښې لیکی ، مولوی صیب (ص/٩٠٢) : (سماع موتی کا مسئلہ زمانہ صحابہ رضی اللہ عنہم سے مختلف فیہ چلا آرہا ہے، یہ مسئلہ اعتقادات ضروریہ میں سے نہیں)دلته واوره مولوی صیب : (یہ مسئلہ اعتقادات ضروریہ میں سے نہیں) څوك وائي؟ شیخ غلام الله خان صیب .

(جنکی نفی یا اثبات پر کفر اور اسلام کا مدار ہے) مولوی صیب دا وائي دا یو علمی تحقیقی مسئله ده ، ستا د مشرانو ستاد ټولو ستاسو هغه استاد خضر حیات صیب چه صبا ، بیگا ، شرك کفر، شرك ، کفر کردان ئي ایزده کړے ، خصوصا په سماع الموتیٰ باندے حتی چه امام بخاری رحمه باندے هم تکفیرکړے ، دے وائي د امام بخاری الفاظ د قران نه خلاف دئ دغه رنگے مولوی صیب ، (بس دا بس کي).

(٧)- مخکښې مولوی صیب تقریبا پدے باندے څما سره ٢٠ حوالی شته دے ، دا ستا سو یو بل عالم چه په تاسو کښې مولوی صیب هغه ژوندے دے او په تاسو کښې هغه معتدل دے ستاسو دغه تکفریانو نه بیزاره دے ستاسو د اوکړئ خطیب صیب (**صفحه نمبر/١٨٠**) کښې **مجموعه برزخی میں خوشی کي زندگی** ، دے په (**صفحه نمبر/١٨٠**) باندے لیکی وائي د سماع موتی دا اختلافی مسئله د عهد د صحابه وو نه تر اوسه پورې **اختلافی راروانه ده** او : (سب نیک بندے اور اکابر اور اولیائے کوئی ان میں کافر گمراہ اور

معتزلی نہیں ہیں)دے وائي څوك چه ورته گمراه او معتزلي وائي دغه د خر نه بد تردے.

(دلائل په دعوی باندے)

(۸)- دغسے مولوی صیب مخکښ ما خپله دعوی پیش کړه څه به خپله دعوی باندے څم دلائل پیش کوم ، مولوی صیب اول دعوی خپله کنفرم که پوره لس تنقیحات پرے ما وکړل ، او مولوی صیب د هغے نه شکل اول نه ئي ثابتوم شکل ثانی شکل رابع ، مولوی شکل اول دے بنیؤ جیب کښ کیدوه شکل ثانی دے کڅ جب کښ کیده شکل ثالث دے په مخکښ جب کښ کیدوه ، قرآن راواخله د قرآن نص ، ما اوله کښ هم اوئیل بحث په دیکښ دے چه د مړی د اوریدلو مسئله شرکی ده کنه؟ مړی اوری که نه اوری ؟ ته ورته اوره ولے شی یا نشی اوره ولے هغه څمونږ په مینځ کښ ما به النزاع نه ده.

(۹)- (دویم نمبر/۲) بغیر د مشئت د الله نه ، اوری که نه اوری ؟ هغه څمونږ په مینځ کښ ما به النزاع نه ده ، نو مولوی صیب خانه پوری به نه کښے دلیل به یو داسے راوړے د قران یا حدیث نه چه ، نه اوری ، څه په خپلو دلائلو باندے څم :

(۱)- اول نمبر دلیل د قران نه(۱)- ﴿فَتَوَلّٰى عَنۡهُمۡ وَقَالَ يٰقَوۡمِ لَقَدۡ اَبۡلَغۡتُكُمۡ﴾ (سورة اعراف پاره/۸/ایت نمبر﴿۸۹﴾﴿فَتَوَلّٰى عَنۡهُمۡ﴾ دصالح عليه السلام تذکره کوی ، وګرځیدو د خپل قوم نه ﴿وَقَالَ يٰقَوۡمِ﴾ او وے ویل اے قومه څما ﴿لَقَدۡ اَبۡلَغۡتُكُمۡ رِسَالَةَ رَبِّىۡ﴾ ما رسولی دی تاسو ته رسالت د

رب خپل ﴿وَنَصَحْتُ لَكُمْ﴾ او نصیحت مې کړې دې تاسو ته ﴿وَلٰكِنْ لَّا تُحِبُّوْنَ النّٰصِحِيْنَ﴾ لیکن تاسو محبت نه کوی د نصیحت کونکو سره.

(۲)- او مولوی صیب ذ دې ایت دلاندې دا څما سره تفسیر دې ، خارجی نه یم چه د ځان نه تفسیرونه کوم **تفسیر ابن ابی حاتم الرازی** (جلد نمبر/ ٤ صفحه نمبر/١٤٠) دې وائي (**ان نبي الله صالحا**) بې شکه نبی د الله صالح عليه السلام (**اسمع قومه**) اوره ولي ئي وو قوم خپل ته (**كما و الله اسمع محمد صلى الله عليه وسلم**) لکه څنګه چه نبی عليه السلام خپل قوم ته د بدر په موقع باندې اوره ولی وو پس د مرګ نه مولوی صیب.

(۳) – (دا دویم نمبر/۲) څما سره مولوی صیب **زاد المسير** دې ، د دې (صفحه نمبر ١٧٤) ده ، دې وائي : (**وقال قتادة ذكرلنا ان صالحا اسمع قومه كما اسمع نبيكم قومه، يعني بعد موته**) رو ستو د مرګ د دوئ نه اوره ول ،څنګه چه محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم دغه مړو ته اوره ولی وو.

بل مولوی صیب دا څما سره ...............................

(پدې وخت کښې اذان شروع شو...... ټائم ختم)

کله چه دوباره شروع شو نو د یو کتاب حواله وائی ، پدې مناظره کښې کتا یاني شویدی، البته د دغه بره عبارت پورې د فریق اول مفتی ندیم تیم وو.



(فریق دوم واحد الله وحدان صاحب ، تړن دوم)

نحمده ونصلي على رسوله الكريم امام بعد :

(دخصم دلائیلو نه جوابات)

(۱)- حضرت جی د تولو نه اول تا او وئیل : چه په اخیري حواله باندے د تکرار دے وکړو ، مولوی صیب دا اوګوره دا هغه کتاب دے کوم نه چه تا پیش کړه ، دغه صفحه دے اوکتله ، د دے نه ور پسے (صفحه/۱۸٤ ) کښې به دا اوګوری :(یہ اعتقاد رکھنا کہ ہر قریب وبعید سے ہر وقت مردہ سنتا ہے، تو یہ عقیدہ صحیح العقیدہ مسلمانوں کا نہیں) دا د مسلمانانو (وریکه صبر خندا به څه وخیم جي) دا وکتو ددے جواب دا درغلے.

(۲) - بل تا اویل چه دیکښې د اعتزال نسبت کول دا حماقت دے او خرتوب دے ، ستا دے مشرکړے ووکه نه ئي وو کړے؟ ، تا ورته تحریف وئیلے وو که نه وو وئیلے؟ ، ستا په نیز باندے ددے فتوی په نزد باندے دا ځان ته بیا چه دے راجع کوی . .

(۳)- ښه : دریم راشه ، ګوره جی تا د **جواهر القران** حواله دے پیش کړه ، مفتی صیب دغه جواهر القران دا سجاد بخاری صاحب لیکلے دے پدے کتاب کښې درته وایم دا د هغوي په نګرانی کښې لیکلے شویدے ، دا اصل کتاب دے د شیخ غلام الله خان صاحب ، او دا د **مختصر جواهر القران** په نوم باندے یادیږی دیخوا اوګوره حضرت جی ، دیکښې (صفحه نمبر/۵۳۱ کښې) لیکی : چه ( کہ سماع الموتی نہیں اور کوئی حدیث صحیح یا ایت سماع موتی پر دال نہیں بلکہ سماع لوگوں کیلئے منجر الی الشرک ہے) دا سرے شرك ته راکاکي شرك ته.

(٤)- دارنگے څه به ذرته دا او وا یم چه تا اویل چه ځمونږ مسلك دے راجح ، دا حضرت وائي **تکشف** کښې مولنا اشرف علی تهانوی صیب ، دے وائي : (اگر اصلاح بدون انکار سماع نہ ہو، تو ء انکار سماع واجب ہے تو انکار سماع واجب ہے).

(۵)- دا به واورے مولانا صیب دیخوا اوګوره ، حضرت جی ، تا اوئیل چه ځما عقیده ده د قریب نه اوس چه تا کم دلیل پیش کړو﴿**لَقَدْ اَبْلَغْتُكُمْ رِسَالَةَ رَبِّيْ**﴾ دے کښې د قریب لفظ شته مولانا ؟ (۱) - قریب لفظ پکښې نشته ، پته ولیکه د (بعید) نه قائل ئي ، مړی کم ځائے کښې وو هغه به کم ځائے کښې کړی او تولو ته به ئي رسولی که به نه ئي رسولی.

(۲)- دویمه خبره داده : چه دلته کښې دا تیزه ول دی مخاطبینو لره په اتباع د خپل دغه په خپل اتباع باندے.

(۳)- بل دا چه عمر ﷺ کتی ته وئیلے وو(**والله انی لاعلم انك لحجر ، والله انی لاعلم انك لحجر**) قسم په الله چه ته کته ئي ، نو بیا به وایي چه کتي هم اوری حضرت جی.

(٤)- دارنگے نبی صلی الله علیه وسلم کوتی ته وئیلے وو (**هل انت الا اصبع دميت**)..... ته به وس وائي چه کته هم اوری ، (الله پاك چه دے الله پاك).

(٥)- دارنگے د نوح ﷺ په واقعه کښې رازی الله پاك زمکے ته وئیلي وو اوبه دے وچے کړه ، اسمان ته وئیلي وو اوبه ودروه ، وس به وے چه زمکه هم اوری او اسمان هم اوری ، دا عقیده دے د کم ځائے نه پیدا کړه.

(٦)- بیا وائي عند القبر لفظ نشته ، سماع الموتی دے پیش کړه ، ما درته وئیل څما د کتابونو نه چه دے کمے حوالے پیش کړے په هغے کښې د عند القبر لفظ نه وو.

(۷)- دویمه خبره داده چه تا اووئیل اکابرین دوارو ته شرك نه وائي ، څؤمره حوالے مے درکړے چه شرك ئي ورته وئیلے دے که نه دے وئیلے؟ په هغے کښې (دور) لفظ هم راغے او (نزدیک) هم راغے.

(۸)- که ته وے چه دیکښې عند القبر نشته ، دیخوا اکوره دا زما سره **حماسه** ده په دیکښې ابو عطاء السندي وائي ( **علی کل من تحت التراب فهو بعید**) ، کم یو سړے چه د خاورے نه لاندے شو دا بعید دے.

(۹)- دارنګے دا څما سره **معالم العرفان** دے دا د هغه مدرسے استاد دے چه کمه کښې شیخ سرفراز صفدر استاد وو ، ده لیکلی دی چه د دنیا واله د قبر نه لرے دے ،حضرت جی ، دا خبره هم پدیکښې کښې هغه ثابت کړلے شوه.

(۱۰)- اوس دینه مخکښې درته ویم ، تا ویل ، ما چی ویل ، چه دا سماع الموتی دا د بریلیانو عیقده ده ، تا په دیکښې چوڼ چرا اوکړه پدیکښې چه دے تا چه کمه حواله پیش کړه حضرت جی ما چه کم الفاظ ویلی وو (ویمه درته) : (سماع الموتی بریلویوں کا ایک مشہور عقیدہ ہے انکا اعتقاد ہے کہ مردے مطلقا ہر حال میں سنتے ہے )صبر اوکه دا به بیا ځان له وایه ، دا څما سره دے ګوره ورته ، دا زما سره **تسکین الاتقیاء** دے دا ستاسو دمشر دے اوس ګوره ورته وائی : (جب قبر میں اعادہ روح ہے اور عذاب وثواب ہے تو حیات بھی ہے اور جب حیات ہے تو علم وسماع کا ہونا اصل ہے تو علم وسماع کا ہونا) پوهه پرے نه شوے (علم

وسماع کا ہونا اصل) دے کښې د قریب مریب لفظ نشته ، حضرت جی ، د مشرانو قول د یو شان ، ستا قول بل شان دے :

(۱۱)- دارنګې دا اوګوره دا ستا مشر دے ستا دغه بصائر والا دے وائي چه د مړو دا اوریدل د جوندو نه اشد دی ډیر زیات دی ، د دے خبرے جواب به هم بیارا کړے .

(۱۲)- او شرکی فتوے ما تاته خودلی وی او د دے دوه وو خبرو جواب درله هم درکړلے شو.

(۱۳)- تا د علامه خضر حیات بکهروی صاحب باره کښې خبره اوکړه څمونږ استاد محترم هغوي ما ته دا لیکل راکړی دی چه مجلس مقننه چه کمه فیصله کړیده هغه باندے څما اعتماد دے او هغه چه کم لفظ وائي سماع عند القبرکه هرڅنګه شي ، هغه وائي : (عادة قائل) هغه مشرك دے.

(١٤)- بیا تا دا اوئیل چه ته ما ته ، چه دے د قرآن مجید د یو ایت نه اوښایه ، څه به درله دومره څه درکم ، دومره څه درکم ، اوس ورته ګوره حضرت جی .

(سورة فاطر) کښې (ایت نمبر/١٤) غوګ ورته کیده ، الله تبارك وتعالی فرمائي : ﴿إِن تَدْعُوهُمْ لَا يَسْمَعُوا دُعَاءَكُمْ وَلَوْ سَمِعُوا مَا اسْتَجَابُوا لَكُمْ﴾ حضرت جی غوګ ورته کیده ایاز باچا ته د دے ایت کریمه نه استدلال کړے وو ، ایاز باچا ته تا د دے ایت نه څه کړے وو ، استدلال دے کړے وو ، غوګ ورته کیده﴿إِن تَدْعُوهُمْ﴾ که تاسوورته اواز کوی ﴿لَا يَسْمَعُوا﴾ نو نه اوری ﴿دُعَاءَكُمْ﴾ ستاسو بلنه ، دا مطلق دے او دیکښې عند القبر هم راغے او که لرے ، هغه پکښې هم راغے ﴿وَلَوْ

﴿سَمِعُوْا﴾ غوګ ورته کیده ﴿وَلَوْ سَمِعُوْا﴾ که چرته واوری ﴿مَا اسْتَجَابُوْا لَكُمْ﴾ قبولتیا درلره نشی کولی. اوس څه د دینه استدلال کوم لګ صبر وکه.

ګوره اول ﴿إِنْ تَدْعُوْهُمْ لَا يَسْمَعُوْا دُعَآءَكُمْ﴾ یو دلیل، دویم ﴿وَلَوْ سَمِعُوْا مَا اسْتَجَابُوْا لَكُمْ﴾ دریم ﴿وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ يَكْفُرُوْنَ بِشِرْكِكُمْ﴾ او په دے باندے تا ایاز باچا ته دے د کفر فتوی لګولی وه که نه وه لګولی؟ (باءك تجر وبائی لايجر) اوس ګوره حضرت جی، ځما استدلال ته ګوره ﴿لَوْ﴾ (لَوْ) راځی د انتفاع ثانی (خبرے مه کوی) (لَوْ) راځی د انتفاع، ثانی بسبب انتفاع اول ثانی نفی دے د وجهے د اول د نفی نه ثانی څه دے استیجاب، استیجاب چه نفی شو اول په طریقه اولی باندے نفی شو، دا ځما سره **نحومیر** دے دا په نحومیر کښ دی، که په دے باندے اعتراض اوکی چه ابن حاجب څه وئیلے دی' چه کله نفي د سبب اوشوه انتفاع د مسبب نه کیږی نو هغه بیا دا وائي چه کله انتفاع د مسبب اوشوه، انتفاع د مسبب سره نفی د انتفاع اود اسبابومکمل راغله، غوګ کیده، استیجاب بالاتفاق منع دے استیجاب بالاتفاق منع دے، چه استیجاب منع شو، نو سماع په طریقه اولی باندے منع شوه، جواب به په پښتو الفاظو کښ نه ئي، که ئي کوے د کتابی حوالی نه او د قاعدے په رو سره به ځما جواب کے.

## (دلائل په خپله دعوی باندے)

(۱۵)- اوس دا ما تا ته پیش کړل ځما د صغري او د کبری د هر یو د پاره به څه جدا دلیل پیش کوم د کبری د پاره مے دلیل پیش کوو.

صغری دپاره (سورة بقره ایت نمبر/۲۸) کښ الله وائی ﴿كَيْفَ تَكْفُرُوْنَ بِاللّٰهِ وَكُنْتُمْ اَمْوَاتًا فَاَحْيَاكُمْ ثُمَّ يُمِيْتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيْكُمْ ثُمَّ اِلَيْهِ

